

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان
دا هیواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




**د پوهنې وزارت**

# پښتو

## پنځم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ.ش.

# د کتاب ځانګړتياوې

**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو ژبې او ادبیاتو د برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اېډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اېډیټ ډیپارټمنټ غړي

**ټولګی:** پنځم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

# لومړی لوست

## حـــمــد

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د حمد پېژندل او په دې پوهېدل چې حمد د الله ﷻ ثنا او صفت ته ویل کېږي.





### پوښتنې

ستاسو په فکر په حمد کې د څه صفت او ستاینې کېږي؟
څوک به ووایي چې د الله ﷻ د قدرت نښې کومې دي؟

پـــه نـــامـــه د هـغـه خـدا ی مـې دا بـیـان دی
چې یـو نـوم یـې په نـومـو نـوکـې سبـحـان دی
هــم پــادشــاه دی د جـمـلـه وو پـادشـاهـانـو
هــم د هـــر یـــوه سـلـطـان پــه سر سلطان دی
هـغـه کـــار چـې و هـــر چـــاوتـه مـشـکـل دی
هـــغـــه کــــار واړه و ده و تـــه اســـــان دی
څــوک آفـتـاب شـي پـر آسـمـان راخـپـژولـی
ده آفــتــاب را خـــپـژولـــی پـــر آســمــان دی

(عبدالرحمن بابا)

رحمان بابا د پښتو ژبې شاعر دی. د پېښور ښار په بهادر کلي کې په ۱۰۱۸ هجري قمري کال کې زیږیدلی او په ۱۱۲۸ هجري قمري کال کې وفات شوی دی.

## فعالیتونه

- ښوونکی دې په ټولګي کې له زده کوونکو سره له سترې مشي وروسته خپل نوم پرتختې ولیکي او خپل نوم دې ورته ووایي، بیا دې زده کوونکي خپل نومونه په وار سره ووايي چې یوله بل سره یې پېژندنه وشي.

- ښوونکی دې زده‌کوونکو ته د زده کړې د ارزښت، ښوونځي ته د تګ راتګ، د ښوونځي اصول او له ټولګیوالو سره د مینې او محبت په هکله خبرې وکړي.

- ښوونکی دې د کتاب لومړی لوست په مناسب آواز زده کوونکو ته ولولي او هغوی دې ورته غوږ ونیسي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د لوست متن د ټولګي په مخ کې ولولي، نور زده‌کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.

- یو زده کوونکی دې د لوست یو بیت ووایي او نور زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ولیکي، بیا دې نور زده کوونکي پاتې بیتونه د ټولګي په مخ کې ولولي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| سبحان | پاک |
| سلطان | پاچا |
| آفتاب | لمر |
| مشکل | سخت |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د شعر څو بیتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# دویم لوست

# نعت

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د نعت پېژندنه او د هغه په هکله لنډ معلومات لاسته راوړل.





## پوښتنې

د تېرو ټولګیو څخه مو کوم نعت شریف په یاد ده؟

څوک به د نعت او حمد ترمنځ توپیر بیان کړي؟

**نصیب مې کړه خالقه ته دیدار د مدینې**
**که لاس راکړي یو ځل را ته سردار د مدینې**
**هر یو ګوره روان دی ځي د پاک نبي ﷺ روضې ته**
**ښایسته رامعلومیږي شام سهار د مدینې**
**د زړونو مالک ته یې رحم وکړه اې خالقه**
**ته یو مې سه یو ځلې په ګلزار د مدینې**

(ابراهیم قطب زی)

مرحوم ابراهیم قطب زی د ننګرهار ولایت د عربانو د کلي اوسیدونکی و، په پښتو او دري ژبو یې ډیر شعرونه ویلي دي.



## فعالیتونه

- یو زده کوونکی دې لوست د ټولګي په مخ کې ولولي او نور دې ورته ځیر شي.
ښوونکی دې تېروتنې ورته سمې کړي.
- زده کوونکي دې لوست په پټه خوله ولولي. د کتاب یو بیت دې په خپلو کتابچو کې ولیکي، بیا دې د ټولګي په مخ کې ولولي.
- زده کوونکي دې لاندې لغتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او په جملو کې دې وکاروي:
دیدار، سردار، مالك، رحم
- یو زده کوونکی دې پورته شي د نعت په هکله دې خبرې وکړي، نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- یو زده کوونکی دې د نعت متن د ټولګي په مخ کې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| نعت | د پیغمبر ﷺ ستاینه |
| رحم | مهرباني |
| مالك | خاوند |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د متن څو بیتونه په خپله خوښه په خپلو کتابچو کې ولیکي او په جملو کې دې وکاروي.

# بي بي عا يشه رضي الله عنها

**موخه:** د متن لوستل، لیکل، د بي بي عایشې رضي الله عنها پېژندنه او په اړه يې خبرې کول.





## پوښتنې

- ویلای شئ چې بي بي عایشه رضي الله عنها څوک وه؟
- ستاسو په فکر بي بي عایشه رضي الله عنها زموږ د ګران پیغمبر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څه کېده؟

**بي بي عایشه رضي الله عنها د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه لور وه. له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم سره يې د بي بي خدیجې رضي الله عنها تر وفات وروسته واده وکړ. له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه يې دیني علوم زده کړل. ډېرو ښځینه مسلمانانو او اصحابو کرامو به له هغې څخه دیني مسایل زده کول. زيات شمېر احادیث ترې روایت شوي دي.**

**بي بي عایشه رضي الله عنها د (۶۲) کالو په عمر په مدینې منورې کې وفات او هلته خاورو ته وسپارل شوه. موږ هم باید د بي بي عایشې رضي الله عنها په شان علم او پوهې په زده کړه کې زیار وباسو او دغه راز د دیني علومو په زده کړه کې کوښښ وکړو.**

## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن په چوپتیا سره ولولي، که اړتیا وه، ښوونکی دې مرسته وکړي.
- د لوست یو یو پاراګراف دې په خپله خوښه په کتابچو کې ولیکي او بیا دې د ټولګي په مخ کې ولولي.
- لاندې جملې دې ولولي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي:

• بي بي عایشه رضي الله عنها ډېره پوهه او عالمه ښځه وه.
• حضرت بي بي عایشه رضي الله عنها د علم او پوهې په برکت لوړې درجې او مقام ته رسېدلې وه.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د بي بي عایشې رضي الله عنها په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| صدیق | رښتینی |
| کوښښ | هڅه |
| وفات | مړینه |
| اصحاب | ملګري |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د بي بي عایشې رضي الله عنها د لوست د مفهوم په هکله څو کرښې په کور کې ولیکي. په بل درسي ساعت کې دې د ښوونکي په لارښوونه ولولي.

# ښوونکی

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د متن په مفهوم پوهیدل او ښوونکي ته درناوی.





**پوښتنه**

ستاسو په فکر يو مهربان ښوونکی څه ځانګړتياوې لري؟

**ښوونکی زده‌کوونکو ته د ښوونې او روزنې دنده په غاړه لري. بايد د مور او پلار په څېر په زده‌کوونکو مهربان وي او زده‌کوونکي د خپلو اولادونو په څېر وبولي.**

**هغه ښوونکي چې په زده‌کوونکو مهربان وي او په مهربانۍ سره ورته لوست ورکوي، پوښتنې ترې کوي، د زده‌کړې لپاره يې هڅوي، نو هغه زده‌کوونکي برياليي وي، خپل لوستونه په ښه توګه زده کولای شي او له کورنيو کارونو سره يې مينه زياتيږي.**

## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن یوځل په چوپتیا سره ولولي او بیا دې متن د څو کسانو له خوا په وارسره ولوستل شي، ښوونکی دې ستونزې ورته حل کړي.
- یو زده کوونکی دې تختې ته ولاړ شي، پر تختې دې ولیکي (مهربان ښوونکی)، نور زده کوونکي دې په وار سره د مهربان ښوونکي د ځانګړتیاوو په هکله یوه یوه جمله ووایي او پرتختې دې ولیکي او بیا دې په وار سره بل زده کوونکی ولولي.
- یو زده کوونکی دې تختې ته پورته شي، بل زده کوونکی دې د متن یوه جمله ووایي او زده کوونکی دې پرتختې له یاده ولیکي. نور زده کوونکي دې د هغه تېروتنې ونیسي.
- څو زده کوونکي دې په وار سره پورته شي، د لوست متن دې په وار سره د ټولګي په مخ کې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- څو زده کوونکي دې په ټولګي کې د لوست د مفهوم په هکله له یاده خبرې وکړي او نور زده کوونکي دې هم خبرې پرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| دنده | وظیفه |
| بریالی | کامیاب |
| مینه | محبت |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ښوونکي په هکله په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکي او بیا دې په بل درسي ساعت کې خپلو ټولګیوالو ته واوروي.

# د مشرانو درناوی

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د مشرانو په درناوي پوهېدل او د هغوی درناوی کول.





**پوښتنې**

- ستاسو په فکر مشران په کشرانو څه حقونه لري؟
- څوک به ووايي چې د مشرانو څه ډول درناوی وشي؟

**د مشرانو درناوی کول زموږ ديني وجيبه او ولسي دود دی. هر چا ته لازمه ده چې د مشرانو درناوی وکړي.**

**مشران پر کشرانو حق لري چې ورته درناوی ولري، لکه: مشرانو ته سلام واچوي، د هغوی ښې او ګټورې خبرې ومني او سرته يې ورسوي .**

**ښه زده کوونکي له مشرانو سره د ناستې په وخت کې تر هغو مخکې او يا لوړ نه کېني او د مشرانو خبرو ته غوږ نيسي.**

**د زده کوونکو دنده ده چې خپله هم د مشرانو درناوی و کړي او نورو همځولو ته هم د مشرانو د درناوي په هکله خبر ې وکړي.**

## فعالیتونه

- اوس دې د لوست متن په چوپه خوله ولولي له لوستلو وروسته دې يو تن د ټولګي مخې ته ورشي، لوست دې د ټولګي په مخ کې ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي.
- يو زده کوونکی دې د لوست متن په مناسب غږ د ټولګي په مخ کې ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي، که اړتيا وه، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.
- يو تن دې پورته شي، د لوست يو پاراګراف دې د ټولګي په مخ کې نورو زده کوونکو ته د املا په توګه ووايي او هغوی دې په خپلو کتابچو کې وليکي. بيا دې څو تنه په ټولګي کې ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي.
- يو زده کوونکی دې تختې ته پورته شي، بل زده کوونکی دې يو پاراګراف ورته ووايي، هغه دې پرتختې وليکي او بيا دې ولولي، نور زده کو ونکي دې د هغه تېروتنې ونيسي او د اصلاح لپاره دې تختې ته راشي.
- څو زده کوونکي دې د تختې مخې ته په وار سره راشي. د لوست د مفهوم په هکله دې خبرې وکړي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| درناوی | احترام |
| دود | دستور، رواج |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د مشرانو د درناوي په هکله څو کرښې ليکنه وکړي او بيا دې د ټولګي په مخ کې ولولي.

# د ښه ملګري ځانګړتیاوې

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د ټولنیز ژوند په ګټو پوهېدل او په ژوندانه کې ځانته د ښه ملګري پیدا کول.





## پوښتنې

- ستاسو په فکر انسان له ټولنې پرته ښه او سوکاله ژوند کولای شي؟
- څوک به ووایي چې د ښه ملګري درلودل به څه ګټې ولري؟

**هر انسان دې ته اړ دی چې په ټولنه کې ژوند وکړي او یو له بل سره مرسته وکړي، ځکه چې په یوازې توګه ژوند کول له ستونزو سره مخ وي. په ټولنیز ژوند کې دې ته اړتیا ده چې انسان ښه ملګري ولري. د اړتیا او ستونزو په وخت کې یو له بل سره مرسته وکړي او ټولنیز ژوند پرمخ بوزي. ښه ملګری په سختو وختونو کې له خپلو ملګرو سره مرسته کوي، هغوی له ستونزو ژغوري او ښې لارې ته یې رابولي، خو باید د ښه ملګري په ټاکلو کې ښه فکر وشي او د هغه نېک صفتونه او ښه خویونه وپېژندل شي.**




- یو زده کوونکی دې متن په مناسب غږ ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي. ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

- زده کوونکي دې متن په چوپتیا سره ولولي، که یې ستونزې درلودې، له ښوونکي څخه دې د ستونزمنو ځایونو پوښتنه وکړي.

- یو زده کوونکی دې تختې ته ولاړشي. بل زده کوونکی دې د لوست یو پاراگراف ورته ووایي او هغه دې پرتختې ولیکي. نور زده کوونکي دې د هغه تېروتنې په نښه کړي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره دټولگي په مخ کې د لوست د مفهوم په هکله خبرې وکړي او نور زده کوونکي دې په ځیر سره واوري او په بحث کې دې ورسره شریک شي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| اړ | محتاج |
| مرسته | کومک |
| ټولنیز | اجتماعي |




زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د لوست د مفهوم په هکله څو کرښې ولیکي او بیا دې په بل درسي ساعت کې هغه ولولي.

# ترافيكي لارښوونې

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، د ترافيکو په نښونښانو پوهېدل او هغوته په ورځني ژوند کې پاملرنه.





## پوښتنه

- تاسو کله په ښارونو کې ترافيکي نښې نښانې ليدلې دي؟
- ستاسو په فکر که چېرې څوك له سرك څخه تېرېږي او د ترافيکو قوانين مراعات نه کړي، څه به پېښ شي؟

**په سرکونو باندې د خلکو او موټرو د تگ راتگ او له سرکونو څخه د تېرېدنې لپاره څراغونه او نورې ترافيکي نښې نښانې موجودې دي چې خلک له هغو نښو او څراغونو څخه په کار اخيستلو سره له خطرونو خوندي پاتې کيږي.**

**په هغو ښارونوکې چې برېښنا وي، په څلور لارو کې څراغونه درول شوي وي. دغه راز په سرکونو باندې ترافيکي لوحې او نښې وي چې د تېرېدلو په وخت کې ترې کار اخيستل کيږي.**

**کله چې څراغ سور وي، ودرېږو. که څراغ زيړ شو، د تگ لپاره تياری نيسو او که څراغ شين شو په سرک حرکت کوو او يا د سرک بل لوري ته تيرېږو.**

**له سرک څخه بايد هغه وخت تېر شو چې موټر نه وي.**

## فعالیتونه

- یو زده کوونکی دې د نوي لوست متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي. په لوستلو کې که څه ستونزه وه، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.
- اوس دې زده کوونکي متن یو ځل په چوپه خوله ولولي. ستونزې دې په نښه کړي او بیا دې له ښوونکي څخه پوښتنه وکړي. ښوونکی دې په لوړ آواز ځواب ووایي.
- یو زده‌کوونکی دې پورته شي، د لوست د متن یو پاراګراف دې د املا په توګه نورو زده‌کوونکوته ووایي او هغوی دې په کتابچو کې ولیکي. بیا دې یو تن خپله لیکنه د تختې پرمخ ولیکي او نور زده کوونکي دې د هغه تېروتنې په نښه کړي.
- یو زده کوونکی دې د لوست متن په مناسب آواز ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي. له سرک څخه د تېریدلو په هکله خپلو ټولګیوالو ته خبرې و کړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د ترافیکي نښو نښانو د مراعاتولو د ګټو په هکله څو کرښې ولیکي.

# له کتاب سره مینه

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د کتاب په ارزښت پوهېدل او له کتاب سره مینه پیدا کول.





## پوښتنې

- تاسو کله کوم کتاب لوستلی دی؟
- ستاسو په فکر د کتاب لوستل او لیکل څه ګټې لري؟

**کتاب د ژوند ډېر ښه ملګری دی. د کتابونو ارزښت دادی چې د علم او پوهې سرچینه ده. هغه څوک چې د کتاب له لوستلو سره مینه لري، مفهوم او موخه یې خپل ذهن ته سپاري او په ژوند کې ترې کار اخلي، د هغه په علم او پوهه کې زیاتوالی راځي.**

**هغه زده کوونکي چې خپل کتابونه پاک او ښه ساتي، په خپل وخت یې لولي، د لوستونو په مفهوم ښه پوهېدلی شي، د داسې زده کوونکو پوهه ډېرېږي، د ښوونځي په ټولو کتابونو باندې د لوستلو او زده کولو له لارې برلاسي او په پایله کې د نېکمرغه ژوندخاوندان کېږي.**



## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن په چوپتیا سره ولولي او ستونزمن ټکي دې په نښه کړي او ښوونکی دې ورته روښانه کړي.
- زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي، که څه ستونزه وه، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.
- زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د کتاب د ارزښت په هکله څو کرښې ولیکي او بیا دې د هرې ډلې استازی د ټولګي په مخ کې ولولي.
- اوس دې څو زده کوونکي متن په مناسب آواز د ټولګي په مخ کې ولولي، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| نېکمرغه | نېک بخته، د ښه ژوند څښتن |
| سرچینه | منبع |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونوکې د لوست د مفهوم په هکله څوکرښې ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې د ټولګیوالو په مخ کې ولولي.

# د ځان او کاليو پا ک ساتل

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، د ځان او کاليو د پاك ساتلو په ګټو او ارزښت پوهېدل .





**پوښتنې**

- ستاسو په فکر د ځان او کاليو پاك ساتل څه ګټې لري؟
- که څوك خپل ځان او کالي پاك ونه ساتي، څه به وشي؟

**پاکوالی د ايمان جز دی. موږ بايد ځان، کالي او د خپلې هستوګنې شاوخوا پاکه وساتو. په ناپاک چاپېريالونو کې ډول، ډول ميکروبونه وي چې له يوه ځای څخه بل ځای ته د بېلابېلو عواملو په وسيله لېږدي او په انسانانو کې ډول، ډول ناروغۍ رامنځ ته کوي. په ميکروبونو او ناروغيو باندې له اخته کېدو څخه د مخنيوي لپاره لازمه ده چې خپل ځان، کالي او خپل چاپېريال پاک وساتو او هر وخت ورته پاملرنه و کړو،ځکه چې په پاک چاپېريال کې ناروغۍ ورکېږي او انسانان ترې ژغورل کېږي.**



## فعالیتونه

- څو زده کوونکي دې په وار سره متن د ټولګي په مخ کې ولولي او ښوونکی دې ورته تېروتنې سمې کړي.

- زده کوونکي دې د لوست متن په چوپه خوله ولولي. له متن څخه دې یو پاراګراف په خپله خوښه په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې څو تنه په ټولګي کې ولولي. ښوونکی دې تېروتنې اصلاح کړي.

- زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. له یوې ډلې څخه دې یو زده کوونکی تختې ته راشي د بلې ډلې یو زده کوونکی دې ورته د متن څو نومونه ووایي، هغه دې پر تختې ولیکي او په جملو کې دې وکاروي، د بلې ډلې زده‌کوونکي دې د هغه تېروتنې اصلاح کړي.

- څو زده کوونکي دې په خپل وارسره متن د ټولګیوالو په مخ کې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

- څو زده کوونکي دې په خپل وار سره د ټولګي په مخ کې د ځان او کالیو د پاک ساتلو د ګټو په هکله خبرې وکړي اوڅو نور زده کوونکي دې د پاکوالي د نورو ګټو په هکله یوه یوه جمله ولیکي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې د لوست د ګټو په هکله څو کرښې ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې ولولي.

# د زده کوونکو مسوولیتونه

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او زده کوونکي پخپلو مسوولیتونو پوهیدل.





**پوښتنې**

- ستاسو په نظر د زده کوونکو مسوولیتونه کوم دي؟
- ستاسو په نظر که زده کوونکي خپل مسوولیتونه سرته ونه رسوي، څه به پیښ شي؟

**زده کوونکي په کور او ښوونځي کې یو شمېر مسوولیتونه لري باید هغه سرته ورسوي. په ښوونځي کې د زده‌کوونکو یو شمېر مسوولیتونه دا دي چې په خپل وخت ښوونځي ته ولاړشي او له رخصتۍ وروسته دې خپلو کورونو ته ځان ورسوي.**

**په ښوونځي کې نظم او قانون مراعات کړي، خپل ورځني درسونه ښه زده کړي او په کور کې تر هر څه د مخه لومړۍ خپله کورنۍ دنده سرته ورسوي.**

**د زده‌کوونکو دنده ده چې خپلو ښوونکو ته درناوی ولري او خبرو ته یې غوږ ونیسي، تر څو د خپلو مسوولیتونو د سر ته رسولو لپاره خپل درسونه زده‌کړي او په ژوند کې ترې کار واخلي.**



## فعالیتونه

- څو زده کوونکي دې په وار سره متن په مناسب آواز ولولي، ښوونکی دې ورته تېروتنې اصلاح کړي.

- یو زده‌کوونکی دې د تختې مخې ته راشي، بل زده کوونکی دې ورته د متن یو پاراګراف د املا په توګه ووايي او هغه دې پر تختې ولیکي. بل زده‌کوونکی دې د هغه تېروتنې ونیسي او پر تختې دې ولیکي.

- زده‌کوونکي دې په دوو یا دریو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د متن د سرلیک په هکله خپل نظرونه ووايي او استازی دې د هغوی نظرونه ولیکي. بیا دې د هرې ډلې استازی د تختې مخې ته راشي او د خپلو ملګرو نظرونه دې یو په بل پسې پر تختې ولیکي او بیا دې ولولي.

- یو زده‌کوونکی دې متن د کتاب له مخې ولولي او نور دې متن ته ځیر شي.

- څو زده‌کوونکي دې په وار سره د لوست د مفهوم په هکله خبرې و کړي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورکې د لوست د مفهوم په هکله څو کرښې ولیکي او بیا دې په بل درسي ساعت کې د ټولګي په مخ کې ولولي.

# د کور په کارونوکې مرسته

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د کور په کارونو کې مرسته کول او د مرستې په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنې**

- تاسو د کور په کارونو کې مرسته کوئ؟
- ستاسو په فکر د کور په کارونو کې مرسته کول څه گټه لري؟

**په هر کور کې ډېر کارونه وي چې باید سر ته ورسیږي. که د کور کارونه د کور یوه غړي ته پرېښودل شي نه یوازې دا چې د هغه د ستړتیا سبب کیږي، بلکې په خپل وخت سرته نه رسیږي.**

**لازمه ده چې د کورنۍ ټول غړي د کور په کارونو کې یو بل ته لاس ورکړي او په گډه یې سرته ورسوي.**

**زده‌کوونکي چې کله کورته ورسیږي، له ډوډۍ خوړلو او لمونځ کولو وروسته دې خپله کورنۍ دنده سرته ورسوي او بیا دې له مور او پلار سره د کور په کارونو کې مرسته وکړي.**

**که څوک له خپلې مور او پلار سره په کارونو کې مرسته وکړي، د دوی په کورونیو کې مینه او یووالی رامنځ ته کیږي او کارونه یې هم په ښه توگه سرته رسیږي.**

## فعالیتونه

- څو زده کوونکي دې په وار سره د لوست متن په مناسب آواز ولولي او ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.
- زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، یوه ډله دې له مور سره د مرستې په هکله څو کرښې په شریکه ولیکي او بله ډله دې له پلار سره د مرستې په هکله څو کرښې په ګډه ولیکي. بیا دې د هرې ډلې استازی خپله لیکنه د تختې مخې ته ولولي، نور زده کوونکي دې نظر ور کړي.
- زده‌کوونکی دې په وارسره د کور په کارونو کې له خور او ورور سره د مرستې په هکله خبرې وکړي. نور زده‌کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- څو زده‌کوونکي دې په وار سره، د لوست د مفهوم په هکله خبرې وکړي او نور زده‌کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې له مور او پلار سره د مرستې په هکله څو کرښې ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې ولولي

# د زده کوونکو ترمنځ ښې اړیکې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د زده کوونکو ترمنځ د ښو اړیکو په گټو پوهېدل او د ښو اړیکو د پیدا کولو د مهارتونو پیاوړتیا.







## پوښتنې

- ستاسو په فکر د زده کوونکو تر منځ د ښو اړیکو درلودل به څه گټې ولري؟
- تاسو کله له خپلو همځولو سره ښې اړیکې درلودلې دي؟

**کله چې زده کوونکي په ښوونځي کې شامل شي له نورو زده کوونکو سره ډېره لږه پیژندگلوي لري. ورو، ورو له یو بل سره د هغوی لیدنه او پیژندنه زیاتیږي او له یو بل سره بلدیږي. لوبې کوي او په گډه لوست وایي، خو دا کار هغه وخت ښې پایلې لري چې په خپلو منځو کې دوستانه اړیکو ته پام وکړي، یو بل ته د ورور او خور په شان وگوري او یو له بل سره په لوست کې مرسته وکړي.**

**ښه! زده کوونکي د وروڼو او خویندو په څېر له یو بل سره پیژندنه او اړیکې لري او له یو بل سره په درسونو کې مرسته کوي.**

## فعالیتونه

- زده کوونکي دې لوست په چوپه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه دې په نښه کړي.
- څو زده کوونکي دې په وارسره د لوست متن د ټولګي په مخ کې ولولي او ښوونکې دې د هغوی تېروتنې ورته اصلاح کړي.
- یو زده کوونکی دې تختې ته راشي، د لوست د سرلیک په هکله دې دوه جملې ولیکي او بیا دې ولولي. نور زده کوونکي دې د هغه تېروتنې په نښه کړي او پر تختې دې ولیکي.
- څو زده کوونکي دې په وار سره د لوست د سرلیک په هکله لنډې خبرې وکړي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.
- څو زده کوونکی دې، د زده کوونکو ترمنځ د ښو اړیکو د نه درلودلو د زیانونو په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د زده کوونکو د ښو اړیکو د ګټو په هکله څو کرښې ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې ولولي.

# د بُست کلا

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د بُست د کلا په هکله معلومات ترلاسه کول.





## پوښتنې

- څوک ویلای شي چې د بُست کلا د هېواد په کوم ولایت کې ده؟
- ستاسو په فکر د بُست کلا به کومو پاچاهانو جوړه کړې وي؟

**زموږ د هېواد له لرغونو آثارو څخه یوه هم د بُست تاریخي کلا ده چې د هلمند په ولایت کې د یوې غونډۍ په سر جوړه شوې ده.**

**دا تاریخي کلا څو ځلې د بریدګرو لخوا ورانه شوې ده. دې کلا څلورو خواوو ته لوړ، لوړ برجونه درلودل.**

**د دې غونډۍ په لمن کې جومات، بازار، کاروان سرایونه او حمامونه جوړ شوي وو چې اوس مهال د بُست د ښار یوازې یوه دروازه آباده پاتې ده چې په ډېر مهارت او ښکلې بڼې جوړه شوې ده چې شتون یې زموږ د تاریخي آثارو لویه برخه جوړوي.**



## فعالیتونه

- څو زده کوونکي دې متن په وارسره په مناسب آواز ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- زده کوونکي دې د بُست د کلا په هکله د ټولګي په مخ کې خبرې وکړي او د نورو تاریخي ځایونو نومونه دې که ورته معلوم وي پر تختې ولیکي.
- د لاندېنیو کلمو متضادې کلمې دې له چوکاټ څخه پیدا او د کلمو تر څنګ دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

لویه ________

وران ________

ښکلې ________

ژمی ________




| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| بڼه | شکل |
| هېواد | وطن، ټاټوبی |



## کورنی دنده

زده کوونکي دې لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې په جملو کې وکاروي.

( بُست، غزنوي، غونډۍ، کلا، ښار )

# د بې اتفاقۍ پايلې

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د بې اتفاقۍ په ناوړو پايلو پوهېدل.



## پوښتنې

- ستا سو په فکر بې اتفاقي کومې پايلې لري؟
- څوک به ووايي اتفاق څه گټې لري؟

په لاندېني نظم کې شاعر د بې اتفاقۍ په اړه يوه کيسه په نظم ليکلې ده. په گډه به يې ولولو او پند به ترې واخلو.

**يوه ورځ چيرې په لاره تېرېدم زه　　ناڅاپي د ونې لاندې ودرېدم زه**
**دوه مرغۍ شوې پاس په ونه کې په جنگ　　دواړه غونډې کلوله شوې په دا رنگ**
**د غونډوسکې غونډې لاندې ولوېدلې　　پيشو ټوپ کړ دواړه يې غبرگې ونيولې**
**چغ ويغ شور و فرياد يې وکړ ډېر　　ولې څه کېده چې وخت و ځنې تېر**
**نفاق دواړه د بلا په خوله کې ورکړې　　غليم دواړه ريز مريز زېرو زبر کړې**
**که څوک کاندې اختلاف له خپله وروره　　له دښمنه به پيمال شي له ضروره**
**فرض کړه دا چې همېشه دښمن تيار دی**
**د فرصت او د موقع په انتظار دی**

(قيام الدين خادم)

قيام الدين خادم د ملا حسام الدين زوی، په ۱۲۸٦ لمريز کال کې د ننگرهار ولايت د کامې په ولسوالۍ کې زېږېدلی دی. شاعر او ليکوال و. د ۱۳۵۸ کال د وږي په پنځمه نېټه وفات شوی دی. نومورې د ډېرو چاپ شوو او ناچاپو آثارو څښتن دی.

## فعالیتونه

- څو زده کوونکي دې د لوست متن ولولي او ښوونکی دې د هغوی تېروتنې اصلاح کړي.
- څو زده کوونکي دې د لوست په مفهوم خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونيسي.
- زده کوونکي دې د لوست مفهوم په خپلو کتابچو کې وليکي او بيا دې څو تنه په ټولګي کې ولولي، نور دې ورته غوږ ونيسي.
- څو زده کوونکي دې د لوست په پوهېدو سره پدې برخه کې د خپل تصميم په هکله خبرې و کړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| غلیم | دښمن |
| ریزمریز | میده میده |
| فرصت | موقع |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د بې اتفاقۍ په هکله څو کرښې وليکي او په بل درسي ساعت کې دې ولولي.

# د چاپېریال پاک ساتل

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د پاک چاپېریال په گټو پوهېدل.





**پوښتنه**

ستاسو په فکر چېرې چې موږ ژوند کوو، د څه په نامه یادیږي؟

**زموږ د استوگنې د ځای شا او خوا، کور، کلی، ښوونځي، سرکونه، د لوبو ځایونه او هغه هوا چې موږ یې تنفس کوو، دا ټول زموږ د چاپېریال په نامه یادیږي. موږ باید خپل چاپېریال ښکلی او پاک وساتو او په هغه کې گلان وکرو او ونې کښېنوو.**

**زموږ د هېواد د وگړو شمېر ورځ په ورځ په زیاتېدو دی، چې د چاپېریال د ککړتیا سبب کیږي او دا ککړتیا بیا ډېرې ناروغۍ او ستونزې رامنځ ته کوي، نو د ټولو خلکو دنده ده چې باید خپل چاپېریال پاک او سوتره وساتي او په پسرلي کې د نیالگیو په کښېنولو او ساتلو کې برخه واخلي.**

## فعالیتونه

- څو زده کوونکي دې متن د یو بل په مرسته ولولي. ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.
- څوتنه زده کوونکي دې د چاپېریال د پاک ساتلو په اړه خبرې وکړي.

- یو زده کوونکی دې په ټولګي کې له یوبل زده کوونکي څخه دغه لاندې پوښتنې وکړي او بل زده کوونکی دې ورته ځواب ورکړي. که څه تېروتنه وه، نور زده کوونکي دې ورته اصلاح کړي.
الف: چاپېریال څه ته وایي؟
ب: د چاپېریال د ککړتیا علتونه څه دي؟
ج: د چاپېریال ساتنه د چا دنده ده؟

- زده کوونکي په دوو ډلو وویشئ. (الف) ډله دې د پاک چاپېریال د ګټو په هکله خپل نظر په شریکه ولیکي او بیا دې د هغوی استازی ولولي، نور دې ورته غوږ ونیسي. (ب) ډله دې د ککړ چاپېریال د زیانونو په هکله خپل نظرونه سره شریک کړي او د خپل استازي په واسطه دې په ټولګي کې ولولي. نور زده کوونکي دې ورته غوږ شي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د پاک چاپېریال په اړه څو کرښې په خپله خوښه ولیکي.

# متضادې کلمې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د متضادو کلمو په معنا او مفهوم پوهېدل.






## پوښتنې

- ستاسې په نظر متضادې کلمې څه ډول کلمو ته وايي؟
- څوک به د متضادو کلموخو بېلگې ووايي؟

**متضادې کلمې: هغه کلمې دي چې د معنا له پلوه يو د بل ضد وي. لکه په دې کلمو کې:**

**(تور ـ سپين) (ژړا ـ خندا)، (اور ـ او به)**

**په ژمي کې هوا سړه وي او خلک توده هوا خوښوي. تر ژمي وروسته پسرلی راځي. پسرلی د کال لومړی فصل دی. د پسرلي په پيل کې شپه او ورځ سره برابره وي بيا ورو، ورو ورځ اوږدېږي او شپې لنډېږي.**

**لاندې جملې ولولئ او هغو کلمو ته ځير شئ چې کرښه ترې لاندې اېستل شوې ده:**

- **د پسرلي په پيل کې <u>شپه</u> او <u>ورځ</u> سره برابره وي.**
- **په ژمي کې هوا <u>سړه</u> وي او انسانان <u>توده</u> هوا خوښوي.**



## فعالیتونه:

- یو یو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته د متن یوه جمله لومړی ولولي او بیا دې پرتختې ولیکي.

- یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته ولاړ شي، لاندې بیتونه دې ولولي او بیا دې پرتختې ولیکي. بل زده کوونکی دې په لیکل شوو بیتونو کې تر متضادو کلمو لاندې کرښه باسي.

کــار ګران مــو شــپــه او ورځ پــه کار لـګیــا دي
د هــېــواد ســخـــتــو دردونـــو تـــــه دوا دي
د ژونـــدون ســرې تــودې زغــمــي پـه میـنــه
د وطـــن د آبـــادۍ لار کـــې فـنـــــا دي

(ارواښاد محمد عثمان نژند)

یو زده کوونکی دې تختې ته راشي، بل زده کوونکی دې له لوستل شوو درسونو څخه څوکلمې ورته ووایي او هغه دې پرتختې ولیکي او په جملو کې دې وکاروي. نور زده کوونکي دې ورته پام ولري.

- یو زده کوونکی دې تختې ته ولاړ شي. یوه جمله دې پر تختې ولیکي. بیا دې هغه ولولي، بل زده کوونکی دې دوه کلمې په نورو جملو کې وکاروي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې څو متضادې کلمې ولیکي او بیا دې په جملو کې وکاروي.

# د ماین خطرونه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ماین په خطرونو پوهېدل او ورڅخه ځان ژغورل.








## پوښتنې

- کله مو داسې پېښه اورېدلې ده چې یو څوک دې د ماین په چاودنه کې مړ یا ژوبل شوی وي؟
- ستاسو په فکر له ماینونو څخه څه ډول ځانونه وساتو؟

**زرمینه د خپلې ترور کره روانه وه. ناڅاپه یې سترګې په ماین ولګېدې، ځای پر ځای ودرېده. د خپل ښوونکي خبرې وریادې شوې چې د ماینونو د خطر د مخنیوي په اړه یې معلومات ورکړی و.**

**لومړی یې هغه ځای د ډبرې په وسیله په نښه کړ. بیا یې د ورور په واسطه د ماین پاکۍ دفتر ته خبر ورکړ، د ماین شنډولو یوه ډله یې له ورور سره هلته ولاړه، لومړی یې تیږې په رنګ سرې کړې چې دلته ګرځېدل خطر لري. بیا یې له سیمې څخه د ماینونو په پاکولو پیل وکړ. ډېر ماینونه یې وایستل او هغه سیمه یې له ماینونو څخه پاکه کړه.**



## فعالیتونه:

- څوتنه زده کوونکي دې متن په چوپه خوله په ټولګي کې ولولي، ستونزمن ځایونه دې په نښه کړي او ښوونکی دې ورته ستونزې حل کړي.

- یو زده کوونکي دې د لوست د مفهوم په اړه خبرې وکړي. بیا دې زده کوونکي د ویل شوي مفهوم څخه څو جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي او په ټولګي کې دې ولولي.

- یو زده کوونکی دې د لوست د متن یوه جمله بل زده کوونکي ته د املا په توګه ووایي. هغه دې پرتختې ولیکي او بیا دې ولولي. نور زده کوونکي دې د هغه تېروتنې ونیسي او اصلاح دې کړي .

- یو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي، لاندېنۍ پوښتنې چې له یوه یوه زده کوونکي څخه وکړي او بل زده کوونکی دې ځواب ورکړي. نور زده کوونکي دې ورته غوږ و نیسي.

الف: زرمینه چېرته تلله؟ ب: په لاره کې یې څه ولیدل؟

ج: بیا یې چاته خبر ور کړ؟

د: ولې یې د ماین پاکولو دفتر ته خبر ورکړ؟ هـ: په پای کې څه وشول؟

- یو زده کوونکی دې پورته شي، د ماین د خطرونو په هکله دې خبرې و کړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

- بل زده کوونکی دې له ماینونو څخه د ځان ژغورنې په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کورو نو کې د ماینونو د خطرونو په اړه کومه کیسه اورېدلې وي وکړي.

# تلويزيون

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل د تلويزيون پېژندل او د تلويزيون د گټو او زيانونو په اړه معلومات ترلاسه کول.





## پوښتنې

- په پورته انځور کې څه وينئ؟
- ستاسو په فکر تلويزيون څه گټې او زيانونه لري؟

**تلويزيون د خبر رسولو هغه وسيله ده چې له غږ سربېره تصوير هم ښيي.**
**تلويزيون د راډيو يو پر مختللی شکل دی.**
**زموږ په ملي تلويزيون کې د قرآن کريم تلاوت، ديني لارښوونې، روغتيايي معلومات، خبرونه، تفريحي پروگرامونه، سپورتي لوبې، ترانې، سندرې، مرکې، روزنيز فلمونه او داسې نور بېلابېل معلومات خپرېږي.**
**زموږ هېواد په ملي تلويزيون سربېره نور خصوصي تلويزيونونه هم لري.**
**زموږ د هېواد ماشومانو او ځوانانو ته په کار ده چې دوی د تلويزيونونو تعليمي او تربيوي خپرونې وگوري او گټه ترې واخلي. د تلويزيون ننداره مو بايد له درسونو، کورني کار او مطالعې څخه ونه باسي.**



## فعالیتونه

- زده کوونکي دې د لوست متن په چوپه خوله ولولي، په کوم ځای کې چې نه پوهیږي، هغه دې په نښه کړي او ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي .

- لاندې لغتونه دې په خپلو کتابچوکې په جملو کې وکاروي .بیا دې یو تن تختې ته راشي خپله لیکنه دې پرتختې ولیکي. نور زده کوونکي دې د هغه تېروتنې په نښه کړي، او په خپلو کتابچوکې دې اصلا ح کړي .

شکل راډیو غږونه

- زده کوونکي په دوو ډلو ووېشئ. یوه ډله دې د تلویزیون د ګټو په هکله او بله ډله دې د تلویزیون د زیانونو په هکله خپل نظرونه سره شریک کړي او بیا دې د خپل استازې په واسطه د ټولګي په مخ کې ووایي او پاتې زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| تعلیمي | ښوونیز |
| تلاوت | د قرآن لوستل |



## کورنۍ دنده

د خپلې سیمې د تلویزیون کومه خپرونه مو چې خوښېږي؟ د هغې د ګټو په باره کې په خپلو کتابچوکې څو کرښې ولیکئ.

# کيسه

**موخه**: د کيسې لوستل، ليکل، د کيسې په ارزښت پوهېدل او په ورځني ژوند کې ترې ګټه اخيستل.





**پوښتنې**

- ستاسو په فکر روزنيزې کيسې څه ګټه لري؟
- په تاسو کې د چا يوه کيسه زده ده؟

**يوه ګيدړه په تياره کې باغ ته ولاړه. باغوان له باغ څخه ډېرجګ ديوال را تاوکړی و.**

**ګيدړې د ديوال په بېخ کې د اوبو د تېرېدلو يو سوری وليد. له دې سوري څخه په ډېر زحمت باغ ته ننوته. ډېر زيات انګور يې وخوړل او خېټه يې وپړسېده.**

**ګيدړې وغوښتل چې له راغلي سوري څخه بېرته ووځي، خو دومره انګور يې  خوړلي وو چې له سوري څخه وتل ورته ناممکن شوي وو. سهار باغوان له خپل سپي سره باغ ته را غی. سپي په ګيدړې بريد پيل کړ. ګيدړې د ژوند په وروستيو شېبو کې داسې وويل: کاشکې لومړی مې د وتلو لار سنجولې وای او بيا باغ ته  ننوتې وای، اوس به له مرګه ژغورل شوې وای.**

## فعالیتونه

- زده کوونکي دې د يو بل  په مرسته  کيسه په چوپه خوله ولولي. ستونزې دې په نښه کړي او ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

- يو زده کوونکی دې لاندې کلمې د کتاب له مخې ولولي او بيا دې د کلمو متضادي معناوې له چوکاټ څخه پيدا  او په خپلو کتابچو کې دې د کلمو تر څنګ وليکي.

- جګ ______

- تياره  ______

- زيات ______

- سهار ______




- څو زده کوونکي دې د متن په اصلي مفهوم د ټولګي په مخ کې خبرې وکړي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي.

- د متن اصلي مطلب دې  په لاندې جملو کې وښيي او بيا دې د ټولګي په مخ  کې هماغه جمله ولولي، نور زده کوونکي دې ورته  غوږ ونيسي.

الف: په باغ کې د انګورو خوړل.

ب: باغ ته د باغوان راتګ.

ج: لومړی د يوه کار د پای سنجول او بيا هغه کار کول.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د لوستل شوې کيسې مطلب په څو کرښو کې وليکي او په بل درسي ساعت کې دې ولولي.

# ماشومانو ته درناوی

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د ماشوم درناوی.





## پوښتنې

- ستاسو په فکر ماشومانو ته څه ډول درناوی وشي؟
- کله مو د ماشوم د درناوي په هکله څه اوریدلې دي؟

**ماشومان د راتلونکي میندې او پلرونه دي. که ښه وروزل شي د خپل ځان، کورنۍ او هېواد لپاره ښه خدمت کولای شي. ماشومان په خپلې کورنۍ حق لري چې د هغوی درناوی وشي. په درنښت ورته وکتل شي. د هغوی روغتیا، زده کړې او اړتیاوو ته پاملرنه وشي.**

**کله چې ماشومانو ته پوښتنې پیدا کېږي باید د هغوی پوښتنو ته مناسب ځوابونه ورکړل شي.**

## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن د يو بل په مرسته ولولي، ستونزمنې کلمې اوجملې دې پکې په نښه کړي او ښوونکی دې ورسره مرسته و کړي.

- زده کوونکي دې په څو ډلو کې د ماشوم د درناوي په هکله خبرې شريکې کړي. يو استازی دې د خپلې ډلې خبرې په کاغذ کې وليکي او بيا دې د ټولګي په مخ کې ولولي.

- يو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي، بل زده کوونکی دې ورته د متن يو پاراګراف ووايي او هغه دې پرتختې وليکي، بل زده کوونکی دې د هغه تېروتنې په ګوته کړي. په خپله دې هغه پر تختې وليکي.

- څو زده کوونکي د ې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او لوست دې په وار سره ولولي او نور زده کوونکي د ې ورته غوږ ونيسي.

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د لاندې لغتونو معناګانې وليکي او په جملو کې دې وکاروي. که يې تېروتنې درلودې نور زده کوونکي دې ورته اصلاح کړي.

الف: ماشوم

ب: کورنۍ

ج: پام

د: درناوی

هـ: روغتيا

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د نن ورځې د درس څو کرښې په خپله خوښه په کتابچو کې وليکي.

# نیوټن

**موخه**: د متن لوستل، لیکل د نیوټن پېژندنه او د ځمکې د جاذبې د قوې په اړه معلومات.





## پوښتنې

- کله مود نیوټن نوم اورېدلی دی؟
- څوک به ووايي چې د جاذبې قوه څه ته وايي؟

**نیوټن هغه ساینس پوه و چې د ساینس د علم په برخه کې یې د ځمکې د جاذبې قانون کشف کړ. ده تقریباً (۳۰۰) کاله د مخه یې په انګلستان کې ژوند کاوه. وايي چې یوه ورځ نیوټن د منې تر یوې ونې لاندې ناست و چې یوه مڼه له ونې څخه را ولوېده. نیوټن په دې فکر کې شو چې هر شی ولې ځمکې ته را لوېږي؟**

**له ډېرې څېړنې وروسته هغه په دې پوه شو چې د ځمکې د جاذبې قوه پر شیانو باندې اغېزه کوي او هغه د ځمکې خوا ته را کاږي.**

**ځمکه یوه قوه لري چې هر شی د ځان خوا ته را کاږي او دې ته د ځمکې د جاذبې قوه وايي.**

## فعالیتونه

- زده کوونکي دې یوځل متن په چوپه خوله ولولي او بیا دې څو تنه زده کوونکي د ټولګي په مخ کې په مناسب آواز ولولي.

- یو یو زده کوونکی دې راشي، د ځمکې د جاذبې د قوې په باره کې دې خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

- زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي او هره ډله دې لاندېنۍ پوښتنې یوه یوه ځواب کړي او بیا دې د هرې ډلې استازي هغه ځوابونه په ټولګي کې ولولي.

- د ځمکې د جاذبې قوه هر شی کومې خوا ته کش کوي؟

الف: د ځمکې خوا ته

ب: د هوا خوا ته

- کوم شی د جاذبې قوه لري؟

الف: یوازې ځمکه

ب: یوازې سپوږمۍ

ج: هر شی

د: هېڅ شی

- یو یو زده کوونکی دې په وار سره نورو زده کوونکو ته د متن د یوه پاراګراف املا ووایي، نور زده کوونکي دې هغه پرتختې ولیکي. او بیا دې هغه ولولي. که یې تېروتنه درلوده، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي .

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروي.

(د جاذبې قوه، نیوټن، ځمکه، کشف)

# بشر دوستي

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د بشر دوستۍ په مفهوم پوهېدل .





## پوښتنې

- ستاسو په فکر بشر دوستي څه ته وايي؟
- په تاسو کې چا په کوم وخت کې له بې وزلو سره د خپل توان په اندازه مرسته کړې ده؟

**انسان یو ټولنیز مخلوق دی او په بېلابېلو ټولنو کې ژوند کوي، باید په ورځنیو چارو کې له یو بل سره همکاري او مرسته وکړي. د خپلو خپلوانو او ګاونډیانو د حال او احوال څخه ځان خبر کړي.**

**په هره لار چې کولای شو باید له محتاجو خلکو سره مرسته وکړو. که نور څه نه وي، یوه ښه خبره ورته وکړو او سمه لاره ورته وښیو.**

**د انسان ژوند یوازې د دې لپاره نه دی چې خپل ځان سوکاله کړي، بلکې د نورو سوکالۍ ته هم په ډېر ارزښت قایل شي.**

**څرنګه چې موږ انسانان یو، دا د انسانیت دنده ده چې د نړۍ له ټولو انسانانو سره مینه، خپله بشري فریضه وبولو.**

## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن د يو بل په مرسته په چوپتيا سره ولولي. که ستونزې ولري، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.
- يو زده کوونکی دې له متن څخه څو کلمې پر تختې وليکي. بل زده کوونکی دې ليکل شوې کلمې په جملو کې وکاروي او بيا دې ولولي.
- څو زده کوونکي دې په وار سره متن په ټولګي کې ولولي او نور دې خپلو کتابونو ته ځير شي. که څه ستونزه ولري، ښوونکی دې ورته لارښوونه وکړي.
- څو زده کوونکي دې په ټولګي کې د انسان د ارزښت په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونيسي.
- زده کوونکي دې په ټولګي کې د بشر دوستۍ په هکله يوه يوه کرښه په خپلو کتابچو کې وليکي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| سوکاله | آرامه |
| محتاج | اړ |
| مرسته | کومک |

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د بشر دوستۍ په هکله په خپلو کتابچو کې څو کرښې وليکي.

# مېلمه پالنه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د مېلمه پالنې په دود او آدابو پوهېدل.





### پوښتنې

- ستاسو په فکر د میلمه پالنې دود څه ارزښت لري؟
- که ستاسې کور ته مېلمه راشي، د هغه څه ډول خدمت کوئ؟

**زموږ هېواد هم د نورو ټولنو په شان یو شمېر دودونه لري چې خلک ورته په درانه نظر ګوري. زموږ له منل شوو دودونو څخه یو هم د مېلمه پالنې دود دی. مېلمه پالنه زموږ په خلکو کې یو ډېر لرغونی دیني او ملي دود دی. افغانان مېلمه ته په درنه سترګه ګوري او د خپل وس او توان په اندازه یې قدر، درناوی او خدمت کوي. زموږ خلک هېڅکله داسې حرکت نه کوي چې د مېلمه د خپګان سبب وګرځي.**

**زموږ په دین کې هم د مېلمه د درناوي په اړه امر شوی دی، نو له دې امله زموږ خلک دې ویاړلي دود ته په درنه سترګه ګوري او د مېلمه درناوی کوي موږ باید خپل ښه دو دو دنه وساتو.**




- زده کوونکي دې متن له یو بل سره په چوپتیا ولولي. ستونزمن ځایونه دې په نښه کړي او ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.
- څو زده کوونکي دې متن د ټولګي په مخ کې په مناسب آواز ولولي. ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.
-یو زده کوونکی دې پر تختې د مېلمه پالنې په هکله څوجملې ولیکي، ودې لولي او بیا دې بل زده کوونکی د هغه تېروتنې ووایي او په سمه بڼه دې ولیکي. ښوونکی دې ور سره مرسته وکړي.
- څو زده کوونکي دې د مېلمه پالنې په هکله د ټولګي په مخ کې خبرې وکړي. نور دې ورته غوږ ونیسي.




زده کوونکي دې د خپلې سیمې د مېلمه پالنې د دود په اړه څو کرښې ولیکي.

# آزادي

**موخه**: د شعر لوستل، ليکل، د آزادۍ په هکله معلومات ورکول او د نوو کلمو په معنا پوهېدل او په جملو کې کارول.





**پوښتنه**

ستاسو په فکر آزادي څه ته وايي؟

په ښرۍ کې ښه يم زه آزاد فقير
نه ورېښمو کې چنجي غوندې اسير
په خامتا کې حُر آزاد ښه دی سل ځله
له غلامه چې لباس يې وي حرير
د وږغنو په کيږدۍ کې که آزاد يم
يو وېښته به يې ور نه کړم په کشمير
په ويجاړه کې مرغه ځاله کې خوښ وي
په قفس کې د سرو زرو وي زهير

(گل پاچا اُلفت)

اروا ښادګل پاچا الفت د هېواد نامتو شاعر او لیکوال و. د لغمان ولایت د عزیزخان کځ اوسیدونکی و. په ۱۳۵٦ کال کې وفات شوی دی.



## فعالیتونه:

- یو زده کوونکی دې یوځل شعر ولولي. بیا دې ځو تنه په وارسره د ټولګي په مخ کې په ښه اواز ولولي، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

- زده کوونکي دې د لوستل شوي شعر مطلب په خپلو کتابچو کې په نثر واړوي او بیا دې ځوتنه په ټولګي کې ووايي.

- یو زده کوونکی دې پر تختې د آزادۍ کلمه ولیکي، بیا دې د آزادۍ په هکله دې یو، یو زده کوونکی خپل نظر پرتختې ولیکي او ودې وايي.

- ځو زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي او د متن په مفهوم دې خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې لاندې کلمې په جملو کې وکاروي.

( خوښ_ ویجاړه_ اسارت_ زهیر_ وښته _ شړۍ )

## پنځه ویشتم لوست

# څپه (هېجا)

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د څپې په معنا او مفهوم پوهېدل.






### پوښتنې

- څوک به ووايي چې څپه یا هېجا څه ته وايي؟
- په تاسو کې به څوک کومه کلمه په څپو واړولی شي؟

(څپه د کلمې يوه داسې برخه ده چې په یو وار له خولې څخه راوځي، لکه: (ما) یوه څپه ده.
د (پښتانه) کلمه درې څپې لري، لکه: پښ - تا - نه. د (بزگر) کلمه دوې څپې لري، لکه: بز - گر او دغه راز د (بڼ) کلمه یوه څپه لري.

**لاندې متن ولولئ! هغو کلمو ته ځیر شئ چې ترې لاندې کرښه اېستل شوې ده. تاسو يې هېجا کړئ.**

**نن زلمي او د ده خور ملالۍ د ښوونځي د ادارې په لارښوونه د ښوونځي په انگړ کې کار وکړ. له نورو زده کوونکو سره يې د ښوونځي انگړ او تولگي پاک کړل. د زلمي او ملالۍ دا کار ډېر خوښ شو. کله چې دوی له کار څخه وزگار شول او بېرته کورته ولاړل، د ښوونځي د انگړ د پاکولو کيسه يې خپلې مور او پلار ته وکړه او هغوی د کیسې په اورېدلو ډېر خوشحاله شول.**



## فعالیتونه

- څو زده کوونکي دې لومړی متن  په پټه خوله ولولي او ستونزمن ځایونه دې په نښه کړي، بیا دې ښوونکی د هغو د ستونزو په برخه کې ورسره مرسته وکړي.
- څو زده کوونکي دې متن په مناسب آواز ولولي، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.
- یو زده کوونکی دې. د متن څو کلمې پر تختې ولیکي او دویم زده کوونکی دې لیکل شوې کلمې په څپو واړوي او دریم زده کوونکی دې د هغه تېروتنې اصلاح کړي.
- زده کوونکي دې متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- زده کوونکي دې په ډلو کې لاندې کلمې په خپلو  کتابچو کې ولیکي او بیا دې ووایي چې څو څپې لري: (سر -   مخ  - لاس – قلم - کتابچه -  شپه – درملتون –کړ – لار
- سمسورتیا   -   ستونزمن- ښوونځي- چاپېریال)
- زده کوونکي دې لاندې لغتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي. په جملو کې دې وکاروي او بیا  دې  په ټولګي کې ووایي.

(وزګار - پاک – خور-   څپه)



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې یوه جمله له ځانه ولیکي او بیا دې د هغې جملې کلمې په څپو واړوي.

# ښکلی لیک

**موخه**: د لوست سم لوستل، لیکل او د ښکلي لیک په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنې**

- ستاسو په فکر ښه لیکنه په څه ګټې ولري؟
- که تاسو یو لیک ولیکئ او څوک یې ونشي لوستلای، ښه لیك ورته ویلای شو؟

**ښکلی لیک دې ته وايي چې لیکونکی او نور خلک یې پرته له ستونزو ولوستلای شي.**
**که یو څوک په لوستلو ښه وپوهیږي اوپه لیکلو کې کمزوری وي او څوک یې لیک ونه شي لوستلای، ښه لیکنه ورته نشو ویلای.**
**ښه لیکنه هغه ده چې د کلمو ټول توري یې په واضح ډول ولیکل شي، کرښې یې کږې نه وي، یوه کلمه له بلې سره نښتې نه وي. په لوستلو کې چا ته ستونزه پیدا نشي. د یو چا لیکنه هغه وخت ښکلې کیږي چې ډېر ډېر لوستل وکړي، ډېره لیکنه وکړي او په هرځل لیکنې کې خپلې تېروتنې اصلاح کړي.**




- زده کوونکی دې یوځل متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- یو زده کوونکی دې له متن څخه بل زده کوونکي ته املا ووایي او هغه دې په ښکلي لیك پر تختې ولیکي او بیا دې ولولي.
- څو زده کوونکي دې د ښکلي لیك په ګډو یوه، یوه جمله ووایي او بل زده کوونکی دې پر تختې ولیکي.
- که په ټولګي کې کوم زده کوونکی وي چې د هغه خط ښکلی وي، تختې ته دې ولاړ شي، یوه جمله دې په ښکلي خط ولیکي، بیا دې نور زده کوونکي هغه په خپلو کتابچو کې په هماغه ډول ولیکي.
- د ښو او سمو لیکلو مهارت څنګه ترلاسه کېږي، دوه زده کوونکي دې پرې خبرې وکړي.




زده کو ونکي دې په کورونو کې څو جملې په ښکلي خط له یاده ولیکي او په راتلونکي ساعت کې دې ولولي.

# اووه ویشتم لوست

# کندهار

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، په معنا یې پوهېدل او د کندهار په هکله معلومات لاسته راوړل.





**پوښتنه**

تاسو کله د کندهار ولایت لیدلی دی؟

**کندهار د هېواد پخوانی مرکز او پایتخت و چې تیمورشاه بادشاه د افغانستان پایتخت له کندهار څخه کابل ته ولېږداوه.**

**نوموړی ښار ډېر تاریخي ځایونه لري، لکه: خرقه شریفه، چهل زینه، د احمدشاه بابا او میرویس خان هوتک مقبرې.**

**اوس مهال د کندهار په ښار کې د عینو ښارګوټي نوموړي ښار ته ځانګړې ښکلا او ارزښت ورکړی دی. د نوموړي ښارګوټي نقشه او پارکونه په هېواد او آسیایي هېوادونو کې ساری نه لري. نوموړی ښارګوټی د تفریح او مېلو لپاره ځانګړې بې ساري پارکونه لري چې هره ورځ په زرګونه خلک د سیل لپاره ورځي.**



## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن په چوپتیا سره ولولي. ستونزمن ځایونه دې په نښه اوله ښوونکي څخه دې پوښتنه وکړي او هغه دې ورته روښانه کړي.

- یو زده کوونکی دې د پارک کلمه پرتختې ولیکي، بیا دې یو یو زده کوونکی د پارک د ګټو په هکله خپل نظر ورکړي، او د ښوونکي په مرستې دې هغه پر تختې ولیکي او لیکل شوې جملې دې ولولي.

- یو زده کوونکی دې د لوست متن ولولي اوښوونکی دې د ستونزو په برخه کې ورسره مرسته وکړي.

- یو زده کوونکی دې د تفریحي پارکونو د ګټو په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

- یو زده کوونکی دې د لوست د متن په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته ځیر شي.

- زده کوونکي دې لاندې کلمې په جملو کې وکاروي.

(هېواد، ساری، واټونه، خرقه، واکمن، اړوند)



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کندهار د لوست مفهوم په لنډو جملو کې ولیکي.

# موزيم

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د موزيم په معنا او مفهوم پوهېدل او د لرغونو آثارو د ارزښت په هکله معلومات ترلاسه کول.





## پوښتنې

- ستاسو په فکر موزيم کوم ځای ته وايي؟
- تاسې کله موزيم ته تللي ياست؟

**موزيم هغه ځای ته وايي چې د يوه هېواد ارزښتناک او لرغوني آثار لکه: هنري، فرهنگي، تاريخي او داسې نور پکې ساتل کېږي.**

**لرغوني آثار د يوه هېواد د تاريخ د يوه سند حيثيت او ارزښت لري. ځکه د ټولې نړۍ خلک د خپلو تاريخي آثارو ساتنه کوي.**

**په افغانستان کې، د هېواد د لرغونو آثارو د ساتلو ځای (موزيم) د کابل ښار په دارالامان کې موقعيت لري. دا موزيم د اسيا له مشهورو موزيمونو څخه گڼل کېږي. لازمه ده چې موږ د موزيم پر ارزښت وپوهېږو او په هغه کې د موجودو لرغونو آثارو ساتنه وکړو.**




- زده کوونکي دې متن یو ځل په چوپه خوله ولولي. پر کوم ځای چې نه پوهېږي، له ښوونکي څخه دې مرسته وغواړي.

- یو زده کوونکی دې د موزیم کلمه پر تختې ولیکي. بیا دې نور زده کوونکي د موزیم په هکله یوه جمله ووایي او هغه دې پر تختې ولیکي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي په مخ کې د موزیم په هکله خبرې وکړي ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

- څو زده کوونکي دې متن ووایي او نور دې ورته ځیر اوسي.

- لاندې کلمې دې په کتابچو کې ولیکي او نوموړي لغتونه دې په جملو کې وکاروي. بیا دې څوتنه په ټولګي کې ووایي.

(ګران، ډېر، هېواد، ارزښت، غوره، آثار، مشهور)




زده کوونکي دې د موزیم د ارزښت په اړه په خپلو کتابچو کې څوکرښې ولیکي.

# مور

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د مور د مقام په ارزښت پوهېدل او د مور درناوی کول.





## پوښتنې

- ستاسو په فکر مور په خپلو اولادونو باندې کوم حقونه لري؟
- په تاسو کې به څوک د مور د حقونو په هکله څه ووايي؟

**د لوی خدای ﷻ له نعمتونو څخه یو نعمت مور ده. مور د خپلو اولادونو په روزنه کې زيار، زحمت او بې خوبۍ زغمي. مور په خپله غېږ کې خپل بچيان د خپلو خلکو د هوساينې، د هېواد د ودانولو او ساتلو لپاره روزي.**

**وايي چې مور په يوه لاس زانګو زنګوي او په بل لاس جهان. د نړۍ ټول پوهان او تاريخي څېرې د مور په غېږ کې روزل شوي دي. له دې امله مور بايد د خپلو ميندو ډېر خدمت وکړو، خبره يې ومنو او دکور په کارونو کې ورسره مرسته او په مينه ورسره خبرې وکړو. موږ بايد زيار وباسو چې مور را څخه خپه نشي او تل بايد د مور زړه وساتو.**

## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن په څوپه خوله ولولي، د ستونزمنو برخو پوښتنه دې له ښوونکي څخه وکړي.
- څو زده کوونکي دې په وار سره د لوست متن په ټولګي کې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- دوه زده کوونکي دې له یو بل څخه د مور د حقونو په  هکله پوښتنې وکړي او هغه بل دې ځواب ورکړي.
- څو زده کوونکي دې په وار سره د متن د مفهوم په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د مور د حقونو  په باره کې څو کرښې و لیکي او بیا دې په ټولګي کې ولولي.
- څو زده کوونکي دې په ټولګي کې د هغو مرستو یادونه وکړي چې په کور کې یې له مورسره کوي.

## کورنۍ دنده

زده  کوونکي دې په  کور کې د مور د حقونو په اړه دوه، درې داسې جملې ولیکي چې په کتاب کې نه وي راغلې.

# د نشه يي توکو زيانونه

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، د نشه يي توکو په زيانونو پوهېدل او له هغو څخه ځان ساتل.





## پوښتنې

- ستاسو په فکر نشه يي توکي کوم زيانونه لري؟
- که چېرې يو څوک په نشه يي توکو روږدی وي، د هغه ژوند به څه ډول وي؟

**نشه يي توکي، لکه: چرس، بنگ، اپين، شراب، تنباکو، نصوار، سگرټ او داسې نور چې په هره بڼه وکارول شي، بدن ته زيان رسوي. نشه يي کسان د بدن د کمزورتيا له امله نشي کولای چې خپل ورځني کارونه سرته ورسوي. ورو، ورو له غريبۍ سره مخ کېږي، د خپلې کورنۍ او ټولنې د اوږو بار گرځي، او خلک ورته په ښه نظر نه گوري. د نشه يي خلکو ذهن ورو، ورو خرابيږي، بيا يوازې د خپلې نشې په فکرکې وي، د خپل ځان پاکوالي او روغتيا ته پام نشي کولای، له خپلې کورنۍ څخه هم جلا کېږي.**

**په نشه يي توکو روږدي کسان د پيسو د تر لاسه کولو لپاره په غلا او نورو ډول، ډول ناروا وو کارونو لاس پورې کوي.**



## فعالیتونه

- زد ه کوونکي دې متن  په خپل منځ کې ولولي. ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

- زده کوونکي دې لاندېنۍ کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي، په  جملو کې دې وکاروي او بیا دې په ټولګي کې ووایي:

(چرس، بنګ، اپین، شراب)

- د نشه يي توکو د  زیانونوپه هکله دې نورو ټولګیوالو ته معلومات ورکړي. ښوونکی دې هم ورسره همکارو اوسي.

- څو زده کوونکي دې د لوست متن په مناسب غږ ولولي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.

- لاندې پوښتنو ته دې مناسب ځوابونه ووایي.

- په نشه يي توکو اخته کېدل څه زیانونه لري؟

- نشه يي کسان ولې خپل ورځني کارونه سم تر سره کولای نه شي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د نن ورځې لوست دوه ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې له ځان سره راوړي.

# روغتيا ساتنه

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، د روغتيا په ارزښت پوهېدل او خپلې روغتيا ته پاملرنه کول.





## پوښتنې

- ستاسو په فکر روغتيا د انسان لپاره څه ګټې لري؟
- که څوک خپلې روغتيا ته پام ونه کړي، څه زيان به ورته ورسيږي؟

**روغتيا انسان ته ډېره اړينه ده. روغتيا دې ته وايي چې وجود مو له ناروغۍ څخه خوندي او جوړ وي. د روغتيا په درلودلو سره کولای شو چې خپل ورځني کارونه، او زده کړې مخ ته يوسو، د خپلې کورنۍ او هېوادوالو خدمت په ښه توګه سرته ورسوو او په پايله کې يو آرامه ژوند ولرو. داسې روغتيا څخه هغه وخت برخمن کېدلای شو چې ځان، کالي او خپل چاپيريال پاک او سوتره وساتو، تر څو د ميکروبونو د رامنځ ته کېدو، ودې او لېږد لپاره زمينه برابره نه شي.**



## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن یوځل په چوپه خوله په ګډه ولولي، په ستونزمنو برخو دې خبرې وکړ ي او بیا د ې ښوونکی ورسره مرسته وکړي.

- څو زده کوونکي دې په وارسره متن په مناسب غږ ولولي. که څه ستونزه وه، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

- څو زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د لوست د سرلیک په هکله څو کرښې له خپل فکر څخه ولیکي، بیا دې په ټولګي کې ولولي، نور زده کوونکي دې د هغوی تېروتنې اصلاح کړي.

- څو زده کوونکي دې د متن پر مفهوم خبرې و کړي او نور زده کوونکي دې هم خپل نظرونه ورسره شریک کړي.

- څو زده کوونکي دې روغتیا ته د نه پاملرنې او د هغو د زیانونو په هکله وغږېږي. ښوونکی دې په پای کې د نورو زده کوونکو نظرونه هم واخلي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د روغتیا په اړتیا باندې څو کرښې ولیکي او بیا دې په بل درسي ساعت کې نورو ټولګیوالو ته ولولي.

# ګل پاچا الفت

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د ګل پاچا الفت د ادبي شخصيت پېژندل او له خپلو ملي شاعرانو سره مينه پيدا کول.






-څوک به د پښتو ژبې د څو مشهورو شاعرانو نومونه واخلي؟

څوک به ووايي چې پورتنی عکس د چا دی؟

**ګل پاچا الفت د لغمان ولايت د قرغيو ولسوالۍ په عزيز خان کڅ کې زېږېدلی و.**

**الفت په خپلو ليکنو کې موږ ته بلنه را کوي چې علم او پوهه زده کړو او عمل پرې وکړو. لکه چې وايي: بې عمله پوهه د غلطې پوهې مثال لري او غلطه پوهه له انسان څخه شيطان جوړوي. همدارنګه خپل هېواد او خلک ورباندې ګران وو او ټول افغانان د دې هېواد بچيان بولي، لکه: چې وايي:**

**د يــوه وطــن اولاد يـــو تـېـر لـه سـره پـه هـېـواد يـو**
**دا وطــن دی پـه موږ ګـــران**
**دا وطــن دی د افـغـــــان**




- زده کوونکي دې متن په چوپتیا سره ولولي. ستونزمن ځایونه دې په نښه کړي او بیا دې له ښوونکي څخه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې متن په مناسب غږ ولولي او ښوونکی دې ورته ستونزې حل کړي.
- د لاندېنیو جملو تش ځایونه دې په مناسبو کلمو سره او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ښاغلی الفت ټول ... د دې هېواد بچیان بولي.

ښاغلی الفت... زېږېدلی دی.

- څو زده کوونکي دې د متن په مفهوم خبرې وکړي. نور زده کوونکي دې په بحث کې ورسره شریک شي.
- زده کوونکي په دوو ډلو ووېشئ. یوه ډله دې د متن د معنا او مفهوم په هکله خپل نظرونه سره شریک کړي، بله ډله دې د علم او پوهې په هکله خپل نظرونه ولیکي او د خپل استازي په واسطه مو دې په ټولګي کې ولولي.

زده کوونکي دې لاندې لغتونه په جملو کې وکاروي او بیا دې څوتنه په ټولګي کې ولولي او په کتابچو کې دې ولیکي.

(پوهه - چوپتیا – الفت - لیکوال)




زده کوونکي دې د ګل پاچا الفت په اړه څو کرښې ولیکي.

# صفت

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، د صفت په معنا پوهېدل او په جملو کې د صفت د کلمو کارول.






## پوښتنې

- ستاسو په فکر صفت څه ډول کلمې ته وايي؟
- کولای شئ داسې جملې ووايئ چې د صفت کلمه پکې استعمال شوې وي؟

**صفت**: **هغه کلمه ده چې د نوم حالت او څرنګوالی څرګندوي.**

**لکه**: **ښه، ښکلی، هوښيار، سپين، تور او داسې نور.**

**لاندې جملې ولولئ او هغو کلمو ته ځير شئ چې کرښه ترې لاندې اېستل شوې ده.**

- **تکړه زده کوونکي تل درس وايي.**
- **هوښيار زده کوونکي د يو بل خبروته غوږ نيسي.**
- **مور په بازار کې سرې مڼې واخيستې.**
- **د پاکو اوبو څښل بدن ته ګټه لري.**

**په پورتنيو جملو کې (تکړه، هوښيار، سرې، پاکو) صفتونه دي.**




- زده کوونکي دې متن په چوپتیا سره ولولي او بیا دې یو زده کوونکی د ټولګي په مخ کې ولولي.
- لاندې جملې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې د صفت تر کلمې لاندې کرښه وکاږي.

- د پخو مېوو خوړل بدن ته ګټه رسوي.
- زیار کښ بزګر له خپلې ځمکې څخه زیات حاصل اخلي.
- سپینه کوتره د سولې نښه ده.
- کندز خواږه ختکي لري.

- زده کوونکي دې د لوست متن په ټولګي کې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي. که کومه پوښتنه لري، هغه دې وپوښتي، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي .
- زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې په خپل منځ کې داسې جملې د خپل استازي په واسطه ولیکي چې په هغو کې صفتونه راغلي وي، بیا دې د خپل استازي په واسطه ولولي او نور دې ورته پاملرنه وکړي .




زده کوونکي دې لاندې صفتونه په کتابچو کې ولیکي او په جملو کې دې وکاروي.

(سپین، هوښیار، پوه، ښه)

### څلور دېرشم لوست

# معلولینو ته درناوی

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، له معلولینو سره مرسته او هغوی ته درناوی کول.





## پوښتنې

- ستاسو په فکر معلول چا ته وايي؟
- ستاسو په نظر له معلولو خلکو سره څنګه چلند کېږو؟

**سمسور دوه کاله مخکې له خپل پلار سره کروندې ته د کار لپاره روان و، په لاره کې پر یوه ماین برابر شو او په دې پېښه کې یې خپله پښه له لاسه ورکړه. په روغتون کې یې درملنه وشوه، خو معلول پاتې شو. هغه ډېره موده غمجن و، ځکه هغه نه شو کولای چې له نورو هلکانو سره لوبې وکړي.**

**ملګري یې د هغه په حال خواشیني وو. هغوی دا فکر وکړ چې څنګه له سمسور سره مرسته وکړي. هغوی داسې لوبې پیل کړې چې په هغو کې سمسور هم برخه اخیستلی شوه.**

**سمسور له زده کړې سره هم ډېره مینه لري. ملګرو یې هغه په ښوونځي کې شامل کړ. اوس د ښوونځي په پنځم ټولګي کې درس وایي.**



## فعالیتونه

- زده کوونکي دې لومړی متن په چوپه خوله ولولي او هغه ځایونه چې پرې نه پوهیږي، په نښه کړي.

- څو زده کوونکي دې متن په لوړ آواز ولولي. نور زده‌کوونکي دې پام وکړي، ترڅو خپلې ستونزې له منځه یوسي.

- د لاندېنیو کلمو مترادفې کلمې دې له چوکاټ څخه پیدا او په خپلو کتابچو کې دې د کلمو ترڅنګ ولیکي.

| | |
|---|---|
| معلول______________ | څرګند |
| مرسته __________ | عیبي |
| تکره _______________ | کومک |
| ښکاره ___________ | څواکمن |

- لاندې جملې ولولئ! په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ او د صفت تر کلمو لاندې کرښه وکاږئ.

الف - اوس سمسور د روغو هلکانو په څېر زده کړه او کار کولای شي.

ب- د سمسور ملګري د هغه په حال خواشیني وو.

ج- هغوی داسې لوبې پیل کړې چې په هغو کې سمسور هم برخه اخیستلی شوه.

- څو زده کوونکي دې له معلولینو سره د مرستې په هکله خبرې و کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د معلولینو په هکله څو کرښې ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې له ځان سره راوړي.

# بېلابېل خواړه

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، د خوړو په ارزښت پوهېدل او ورڅخه کار اخيستل.





## پوښتنې

- ستاسو په فکر زموږ بدن خوړو ته څه اړتيا لري ؟
- که موږ هر ډول خواړه ونه خورو، بدن ته به موخه زيان ورسيږي؟

د هېواد د هرې سيمې په بېلابېلو موسمونو کې هر ډول حبوبات، ترکارۍ او مېوې پيدا کېږي او هېوادوال د خوړو لپاره ترې کار اخلي. په ځينو سيمو کې يو شمېر خلک ترکاري وچوي او بيا يې په بل موسم کې پخوي. دغه راز يوشمېر مېوې تازه او يو شمېر مېوې تازه او وچې خوړل کېږي.

هر ډول خواړو او ميوې د بدن د ودې، د کارکولو د وړتيا او د ناروغيو د مخنيوي لپاره په خپلې برخې کې ډېره مرسته کوي، د بېلګې په توګه: حبوبات په ودې او نمو کې مرسته کوي، خواړه او غوړ وجود ته انرژي ورکوي او يو شمېر خواړه په وجود کې ټولې اړتياوې پوره کوي، لکه: شيدې، هګۍ اوداسې نور.

د ورځنيو خوړو په مهال وېش کې بايد توازن رامنځ ته کړو او د ټاکلي پروګرام له مخې د ځان لپاره خواړه تيار کړو.

## فعالیتونه

- څو زده کوونکي دې متن په مناسب غږ په ټولګي کې ولولي، ښوونکی دې ورته ځیر وي، که اړتیا وه مرسته دې ورسره وکړي.
- زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. ټول زده کوونکي دې متن ولولي. یوه ډله دې په متن کې صفتونه پیدا کړي، په جملو کې دې وکاروي او بله ډله دې د مېوو د ګټو په هکله څو کرښې ولیکي، بیا دې څوتنه په ټولګي کې خپله لیکنه ولولي.
- یو زده کوونکی دې پرتختې د مېوو نومونه چې بل زده کوونکی یې ورته وایي، د املا په ډول ولیکي او په پای کې دې یو بل زده کوونکی هغه ولولي.
- یو زده کوونکی دې د ټولګي په مخ کې د مېوو نومونه واخلي او نور دې ورته نور نومونه هم واخلي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د خوړو د ګټو په هکله څو کرښې ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې ولولي، نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.

## شپږ دېرشم لوست

# ولسي دودونه

**موخه**: د متن لوستل، ليکل، د ولسي مثبتو دودونو په ارزښت پوهېدل او هغه په خپل ژوند کې عملي کول.





### پوښتنې

- ستاسو په فکر په يوه ټولنه کې مثبت دودونه څه گټې لري؟
- څوک به ووايي چې زموږ د ټولنې کوم دودونه ښه دي؟

**هره ټولنه خپل دودونه لري چې يوه ټولنه له بلې څخه بېلوي. په ټولنه کې ځينې دودونه گټور او اوږد عمر لري او ځيني دودونه بيا د ټولنې د خلکو لپاره گټه نشي رسولی.**

**څومره چې يوه ټولنه پرمختگ کوي، په هماغه اندازه د هغې ټولنې په دودونو او رواجونو کې بدلون رامنځ ته کېږي. خلکو ته گټور دودونه او رواجونه پاتې کېږي او هغه چې خلکوته گټه نشي رسولی، د ټولنې له پرمختگ څخه وروسته پاتې کېږي.**

**موږ ته لازمه ده چې خپلو گټورو دودونو ته په درنه سترگه وگورو او سرته يې ورسوو او هغه دودونه چې خلکو ته گټه رسولی نشي، هغه بايد پرېږدو چې له منځه ولاړشي.**



## فعالیتونه

- زده کوونکي دې یوځل متن په چوپه خوله ولولي. په هغو جملو او کلمو چې نه پوهیږي، له ښوونکي دې پوښتنه وکړي.

- یو زده کوونکی دې د لوست متن ولولي او ښوونکی دې ورسره په لوستلو او د تېروتنو کې مرسته وکړي.

- زده کوونکي دې د دودونو په هکله له کتاب پرته څو کرښې ولیکي او بیا دې په ټولګي کې ووایي.

- زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. یوه ډله دې د ګټورو دودونو په هکله او بله ډله دې د ناوړه دودونو د زیانونو په هکله خپلې نظریې سره شریکې کړي او بیا دې د هغوی استازي د ټولګي په مخ کې ولولي.

- څو زده کوونکي دې د خپل کلي او سیمې د یوه دود نوم واخلي او په اړه دې خبرې وکړي چې په څه ډول سرته رسېږي .



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلې سیمې د یوه دود په هکله څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# اووه دیرشم لوست

## ابن سینا

**موخه**: د متن لوستل، لیکل او د ابن سینا په هکله معلومات ورکول.





**پوښتنې**

- کله مو د ابن سینا نوم اوریدلی دی؟
- څه فکر کوئ چې دغه عالم په کومو علومو کې پوره لاس رسی درلود؟

**ابن سینا د نړۍ مشهور عالم او د بخارا په ښار کې زیږیدلی و. نوموړی د شلو کلونو و چې د خپل وخت د یوه عالم په نوم وپیژندل شو.**

**ابن سینا په خپل وخت کې د طب په هکله شپاړس کتابونه لیکلي دي. خورا مشهور کتاب یې د (القانون فی الطب) په نوم یادیږي. له دې کتاب څخه څه د پاسه شپږ سوه کاله د درسي کتاب په توګه ګټه اخیستل کېده. اوس هم ځيني خلک د نوموړي کتاب له مطالعې څخه ګټه اخلي .**

**ابن سینا د فلسفې او عقایدو په هکله (۲۸) کتابونه لیکلي دي. دغه راز یوولس کتابونه یې د نجوم او ساینس په برخه کې او څلور نور یې د شعر او شاعرۍ په اړه لیکلي دي. د نړۍ ټول خلک د ابن سینا خدمتونو ته په درانه نظر ګوري.**



## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن د یو بل په مرسته په چوپتیا سره ولولي. څو تنه زده کوونکي دې د ابن سینا په اړه څه چې یې له متن څخه زده کړي دي معلومات وړاندې کړي، که څه ستونزه یې درلوده، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

- زده‌کوونکي دې له لاندې کلمو څخه جملې جوړې کړي او بیا دې په ټولګي کې ولولي.

مشهور- طبابت- زیږیدلی- نجوم- ګټه

- زده کو ونکي دې د لوست د موخو په هکله خبرې وکړي او بیا دې بل زده کوونکی د هغه خبرې بشپړې کړي. ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

- زده کوونکي دې لاندېنیو پوښتنو ته په شفاهي توګه سم ځوابونه ورکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

- ابن سینا د علومو په کومو برخو کې پوهېده؟
- ابن سینا په کومو علومو کې ۶۸ کتابونه لیکلي دي؟
- ولې خلک ابن سینا ته درناوی لري؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ابن سینا په اړه یوه لنډه لیکنه وکړي او په بل درسي ساعت کې دې په ټولګي کې ولولي.

# اته دېرشم لوست

## اشر (ګډ کار)

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د ګډ کار د ګټو په ارزښت پوهېدل او ګډ کار کول.





**پوښتنې**

- کله مو په ګډو کارونو کې برخه اخیستې ده؟
- څوک به ووایي چې ګډ کار څه ګټې لري؟

**سباوون د ترکارۍ د کرلو لپاره پرېشان و. دی یوازې و، د ترکارۍ د کرلو وخت ترې تېرېده. له خپلې مېرمنې تورپیکۍ سره یې مشوره وکړه. هغې ورته وویل:**

**- د کلي ځوانان د اشر لپاره را وغواړه.**

**سباوون هم د خپلې ماندینې خبره ومنله. د کلي زلمیان یې د اشر لپاره را وغوښتل. سهار وختي یې د ترکارۍ په کرلو پیل وکړ، تر غرمې پورې یې کار وکړ، په پټي کې یې ډول، ډول ترکارۍ وکرلې او بیا یې پولې ورته جوړې کړې.**

**تورپیکۍ د غرمې لپاره ورته ښه خوندوره ښوروا پخه کړې وه. د کلي زلمیانو په ګډه سره ډوډۍ وخوړه. سباوون خپلې مېرمنې ته وویل:**

**-ګډ کار زموږ د ټولنې ډېر ښه دود دی. زه به هم له دې وروسته د ګاونډیانو په اشرونو کې هرومرو برخه اخلم.**

## فعالیتونه

- زده کوونکي دې يوځل متن ولولي او بیا دې څو تنه د ټولګي په مخ کې ولولي.
ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

- يو زده کوونکي دې متن ولولي، په خپله خوښه دې څو کلمې خوښې او په جملو کې دې وکاروي.
بيا دې څو تنه زده کوونکي خپلې ليکل شوې جملې د ټولګي په مخ کې ولولي.
- يو زده کوونکی دې په ټولګي کې د اشر یا ګډ کار د ګټو په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته متوجې وي.

- بل زده کوونکی دې د يوازې کار د وروسته پاتې کېدو په هکله خبرې و کړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
- څو زده کوونکي دې په خپل کلي کې د ښو دودونو او رواجونو په هکله خبرې وکړي او ښوونکی دې د خبرو په بشپړولو کې ورسره مرسته وکړي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د هغه ګډ کار په هکله چې په کور، ښوونځي او یا په کوم بل ځای کې يې تر سره کړی وي، څو کرښې وليکي.

# ملگري ملتونه

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د ملگرو ملتونو پيژندل او د ملگرو ملتونو د دندو په اړه معلومات ترلاسه کول.





پوښتنې

- آيا ويلای شئ چې ملگري ملتونه څه ډول سازمان دی؟
- د ملگرو ملتونو د سازمان اصلي موخه څه ده؟

**ملگري ملتونه يو نړيوال سازمان دی. د دغه نړيوال سازمان موخه داده چې په نړۍ کې د کړکېچونو او شخړو د مخنيوي لارې چارې برابرې کړي.**

**د بېلابېلو هېوادونو تر منځ د پوهاوي، مرستو او سوله ييز ژوند د لارو چارو په برابرولو کې مرسته وکړي.**

**دغه راز په وروسته پاتې هېوادونو کې د ښوونې، روزنې د تاريخي ودانيو، روغتيا، خوراکي موادو او د ماشومانو په روزلو او نورو برخو کې مرستې کوي. دا سازمان بېلابېلې څانگې لري چې يوه يې د يونيسف څانگه ده .**

**يونيسف د ماشومانو او ځوانانو د ښوونې او روزنې، خوړو، روغتيا، اوبو، درمل ورکولو او نورو برخو کې مرسته کوي.**




- زده کوونکي دې یوځل لوست په چوپه خوله ولولي. که ستونزه وه، هغه دې په نښه کړي او بیا دې له ښوونکي څخه وپوښتي.
- زده کوونکي دې متن ولولي، څو لغتونه دې خوښ کړي، په جملو کې دې وکاروي او بیا دې څوتنه په ټولګي کې ولولي.
- زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. (الف) ډله دې د لاندې لومړۍ پوښتنې د ځواب په هکله خپل نظرونه او د (ب) ډله دې د دویمې پوښتنې په هکله خپل نظرونه سره په شریکه ولیکي او بیا دې د هر ډلې استازی په ټولګي کې ولولي.

- یونیسف څه فعالیتونه ترسره کوي؟
- د ملګرو ملتونو سازمان د جوړېدو اصلي هدف څه شی دی؟

زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې ډک کړي بیا د ې څوتنه په ټولګي کې ولولي.

الف: ملګري ملتونه یو ............ سازمان دی.

ب: یونیسف د ماشومانو او ځوانانو .................. په برخه کې مرستې کوي.

ج: د دغه نړیوال سازمان د جوړېدو اصلي موخه دا ده چې د .......... مخنیوی وکړي




زده کوونکي دې د لوست مفهوم او لنډیز په څو کرښو کې ولیکي.

# مترادفې کلمې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د مترادفو کلمو په معنا او مفهوم پو هېدل او ورڅخه ګټه اخيستل.






## پوښتنې

- ستاسو په فکر کله مو مترادفې کلمې په خبرو او لیکنو کې کارولي دي ؟
- په تاسوکې څوك د مترادفو کلمو بېلګې ویلای شي؟

**ښکلا او سمسور خور او ورور دي. دوی په یوه شنه او زرغون بڼ کې خوښ او خو شحاله ناست وو. هغوی ښکلي او ښایسته کالي اغوستي وو. د بڼ په هره خوا کې خوښي او خوشحالي وه. هرې خوا ته د مرغيو چغهار، خواږه آوازونه او نارې وې. په آسمان کې برېښنا شوه. باران په اورېدو پيل وکړ. ښکلا او سمسور دواړو په ځغاستو او منډو ځانونه کور ته ورسول.**

**مترادفې کلمې: هغه کلمې دي چې په شکل یا بڼه کې سره توپیر لري او معنا یې سره ورته وي، مترادفه کلمه بلل کیږي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې متن یو ځل په چوپه خوله ولولي. بیا دې څوتنه په ټولګي کې پورته شي او په وار سره دې نوی لوست ولولي. که ستونزه وه، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

- لاندې جملې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او تر مترادفو کلمو لاندې دې کرښه وکاږي.

- انسان چې روغ او جوړ وي، ښه کار کولای شي.
- زرغونه د آزموینې په تېرولو ډېره خوشحاله او خوښه ښکاري.
- زموږ ښوونکي پاک او سپېڅلي خلک دي.

- څو زده کوونکي دې په ټولګي کې د متن مترادفې کلمې وښيي او نور دې ورته ځیر شي.

- څو زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې څو مترادفې کلمې ولیکي او څو تنه دې په ټولګي کې ولولي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې څو مترادفې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي او په جملو کې دې وکاروي.

## یو ځلوېښتم لوست

# پر حیواناتو زړه سوی

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، پر حیواناتو زړه سوی او ورسره مرسته کول.





**پوښتنې**

-پر حیواناتو مو کله زړه سوی؟

- ستاسو په فکر حیوانات موږ ته څه ګټې رسوي؟

**الله ﷻ ډول، ډول حیوانات او الوتونکي پیدا کړي دي .ځینې په هوا کې ځینې په ځمکه او ځینې په اوبو کې ژوند کوي. ځینې هم په وچه او اوبو دواړو کې ژوند کو ي.**

**له یو شمېر حیواناتوڅخه بېلا بېلې ګټې اخیستل کېږي. د بیلګې په توګه : له پوستکو، غوښو او شیدو څخه یې ګټې اخلو او زموږ د خوړو ارزښتناکه برخه جوړوي.**

**پر حیواناتو باید زړه سوی ولرو، هغوی ونه ځوروو. د ناروغۍ درملنه یې وکړو په غذا او ساتلو کې یې زیار وباسو.**



## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او بیا دې څوتنه په ټولګي کې ولولي، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي .

- زده کوونکي په دوو ډلو وویشئ .

لومړۍ ډله دې د هغو حیواناتو نومونه په شریکه چې له پوستکو څخه یې کار اخیستل کیږي او بیا دې د خپل استازي په واسطه ولولي.

دویمه ډله دې د هغو حیواناتو نومونه ولیکي چې له شیدو څخه یې ګټه اخیستل کیږي.

بیا دې د هرې ډلې استازی د ټولګي په مخ کې ووایي.

- یو زده کوونکی دې د هغو حیواناتو نومونه واخلي چې په ځمکه او اوبو کې ژوند کولای شي.

- یو زده کوونکی دې د اهلي حیواناتو نومونه واخلي او بل دې د هغوی د ګټو په اړه خبرې وکړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې په خپلو کتابچو کې ولیکي چې پر حیواناتو څرنګه زړه سوی وکړو او په بل درسي ساعت کې دې خپلو ټولګیوالو ته واوروي.

# په شیدو کې د اوبو ګډول

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، زده کوونکي په دې پوهول چې په شېدوکې اوبه ګډول لویه ګناه ده او باید ترې ډډه وشي.





**پوښتنې**

- ستاسو په نظر د شېدو په پلورلو کې د اوبو ګډول ښه عمل دی؟
- څه فکر کوئ چې د شېدو خوړل وجود ته څه ګټې لري؟

**حضرت عمر رضي الله عنه به د عادت له مخې د مدینې منورې په کوڅو کې د شپې ګرځېده. یو آواز یې تر غوږو شو چې یوې ښځې خپلې لور ته وویل، لورې! په دې شیدو کې لږې اوبه ګډې کړه چې ډېرې پیسې پرې وګټو او څه کار به مو پرې روان شي، خو لور یې مخالفت وکړ.**

**لور ورته وویل: حضرت عمر رضي الله عنه په شیدو کې له اوبو ګډولو څخه منع کړي یو.**

**مور ورته وویل: اوس، خو دلته څوک نشته.**

**لور ورته وویل: که عمر رضي الله عنه نشته، خدای جل جلاله خو شته.**



## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن په مناسب غږ ولولي، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

- زده کوونکی دې په وار سره له متن څخه یو بل ته د یوې جملې املا وواییي او پر تختې دې ولیکي. بیا دې بل زده کوونکی د هغې جملې تېروتنه اصلاح کړي، پاتې نور زده کوونکي دې همدا فعالیت تر سره کړي.

- لاندې پوښتنو ته دې ځوابونه ورکړي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. وروسته دې څو کسه په ټولګي کې خپل ځوابونه وواییي.

- ښځې ولې په شیدو کې اوبه ګډولې؟
- د دې لوست اصلي مطلب څه شی دی؟
- مور باید په پلورلو کې څه شی په پام کې ونیسو؟

- څو زده کوونکي دې په ټولګي کې په وار سره د لوست د مفهوم په هکله خبرې وکړي.

- زده کوونکي دې د (مخالفت، شپې، ګډې او منع) کلمو ته په خپلو کتابچو کې جملې جوړې کړي. او بیا دې څو تنه خپلې جوړې کړې جملې په لوړ آواز ولولي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې د لوست مفهوم په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د ښو خبرو اړتیا

**موخه**: د متــن لوستل، لیکل، د ښو خبرو زده کول او ښې خبرې کول.



**پوښتنې**

- په تاسو کې به څوک د ښو خبرو په ګټو خبرې وکړي؟
- که د چا ښې خبرې زده نه وي، څه زیان به ورته ورسېږي؟

**هر چاته لازمه ده چې ښې خبرې زده کړي او ورڅخه ګټه واخلي.**

**ښې خبرې دا دي چې په هغوکې داسې کلمې و کارول شي چې پکې د چا بې احترامي ونشي او هر چاته له درناوي سره د خپلې موخې یادونه وشي.**

**د خبروکوونکي باید په ساده الفاظو او د ښو جملو په جوړولو سره داسې خبرې وکړي چې د مقابل لوري له سویې او درناوي سره برابرې وي.**

**هر څوک باید د خبرو کولو ځای او وخت وپېژني او په درناوي سره خپلې خبرې پای ته ورسوي.**

**په خبرو کې داسې کلمې ونه کاروي چې په چا باندې بدې ولګېږي او زړه یې ور څخه بد شي.**



## فعالیتونه

- ټول زده کوونکي دې متن یو ځل په چوپه خوله ولولي او بیا دې څو تنه وروسته په مناسب آواز ولولي، که اړتیا وه، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.
- یوزده کوونکی دې بل زده کوونکي ته د لوست یوه کرښه د املا په توګه ووایي او هغه دې پر تختې ولیکي. بل داوطلب زده کوونکی دې د هغه تېروتنې په نښه کړي.
- یو زده کوونکی دې د ښو خبرو کولو د ګټو په هکله خبرې وکړي، بل زده کوونکی دې د بدو خبرو کولو د زیانونو په هکله خبرې وکړي.
- څو زده کوونکي دې د لوست متن په مناسب غږ ولولي او نور دې د هغو تېروتنو ته ځیر او ورته دې اصلاح کړي.
- زده کوونکي دې په خپل زړه له متن څخه څو کلمې وټاکي او هغه دې په جملو کې وکاروي او بیا دې په ټولګي کې ولولي. نور دې ورته غوږ ونیسي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د ښو خبرو د اړتیا په هکله څو کرښې ولیکي او بیا دې په بل درسي ساعت کې په ټولګي کې ولولي.

# وچې او تازه مېوې

**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د وچو او تازه مېوو پېژندل ا و د هغو په ګټو پوهېدل.





**پوښتنه**

-ستاسو په فکر په پورته عکس کې څه شی لیدل کېږي؟

**زموږ د هېواد په مرکز او ولایتونو کې د ډول ډول، مېوو ونې او باغونه شته چې ډېره اندازه تازه او وچې مېوې ترې لاسته راځي. تازه او وچې مېوې هم د هېواد په دننه کې خوړل کېږي او هم بهرنیو هېوادونو ته لېږل کېږي، لکه: منې، انګور، انار، بادام، پسته، جنغوزي، کښته او داسې نور. له دې لارې زموږ هېواد او خلکو ته ګټې رسېږي.**

**تازه او وچې مېوې وجود ته ډېرې ګټې رسوي. د مېوو په خوړلو سره وجود تقویه او د ناروغیو په مقابل کې د وجود مقاومت زیاتوي.**

**موږ باید په خپلو ځمکو او د کورونو په حویلیو کې مېوه لرونکې ونې هم کښېنوو او ښه ساتنه یې وکړو چې په ډېره اندازه مېوې ترې لاسته راشي.**



## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن په خپله ولولي او بيا دې څوتنه د ټولګي په مخ کې ولولي. ښوونکی دې ورته وخت ورکړي چې د ستونزمنو کلمو او جملو پوښتنه وکړي.

- زده کوونکي دې په دوو ډولو وويشل شي. يوه ډله دې په خپل منځ کې د تازه مېوو نومونه او بله ډله دې د وچو مېوو نومونه وليکي. بيا دې هر استازی د ټولګي په مخ کې ولولي.

- يو زده کوونکی دې د څو وچو او تازه مېوو نومونه پر تختې وليکي. نور زده کوونکي دې نومورې نومونه له تختې څخه په خپلو کتابچو کې وليکي او په جملو کې دې وکاروي او بيا دې څوتنه په ټولګي کې ولولي.

- څو زده کوونکي دې په ټولګي کې د مېوو د ګټو په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونيسي او که څوک د مېوو د ګټو په هکله نورې خبرې کولای شي، وخت دې ورکړل شي.

- يو زده کوونکی دې د لوست د مفهوم او موخې په هکله رڼا واچوي، بل زده کوونکی دې د هغه خبرې بشپړې کړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلې سيمې د مېوو نومونه په خپلو کتابچو کې وليکي.



## پنځه څلوېښتم لوست

# ملي يووالی

**موخه**: د متن لوستل، ليکل او د يووالي په ارزښت او ګټو پوهېدل.



### پوښتنې



- ستاسو په نظر په يووالی کومې ګټې ولري؟
- که د يوه هېواد د خلکو ترمنځ ملي يووالی نه وي څه زيان به ولري؟

**په کور، ټولګي، ټولنه او هېواد کې يووالی ډېر اړين دی. په يووالي سره د خلکو تر منځ مينه او ورور ولي زياتېږي او د خلکو ترمنځ بې اتفاقي له منځه ځي. الله ﷻ هم په يووالي باندې امر کړی دی. په يووالي سره هېواد پر مختګ کولای شي او د ټولنې د سوکالۍ او نېکمرغۍ لپاره لاره هواريږي، نو بايد موږ ټول هېوادوال د خپل هېواد د ودانولو لپاره يو بل ته په مينه لاسونه ورکړو او د نفاق مخه ونيسو.**



### فعاليتونه

زده کوونکي دې يوځل متن په چوپه خوله ولولي او بيا دې څو تنه په ټولګي کې په مناسب غږ ولولي.

- زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. يوه ډله دې په خپل منځ کې د ملي يووالي د ګټو په هکله او بله ډله دې په يوه ټولنه کې د ملي يووالي د نشتوالي د زيانونو په هکله خپل نظرونه شريک کړي او د خپل استازي په واسطه دې وليکي او بيا دې په ټولګي ولولي.
- يو زده کوونکی دې د ملي يووالي کلمه پر تختې وليکي، نور زده کوونکي دې د هغو د ګټو په هکله خپل نظرونه ووايي او خبرې دې پرې وکړي.

زده کوونکي دې د لاندېنيو جملو تش ځايونه په مناسبو کلمو سره ډک کړي.

- په ........ سره د خلکو تر منځ مينه او ورور ولي زياتيږي.
- په يووالي سره د هېواد ............. ته دوام ورکولای شو.



### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د لوست په مفهوم باندې څو کرښې وليکي او په بل درسي ساعت کې دې ولولي.

# ساده او مرکبې کلمې

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د ساده او مرکبو کلمو پېژندل او په جملو کې يې کارول.


**پوښتنې**

- په تاسو کې به څوک ووايي چې ساده کلمه څه ډول وي؟
- له تاسو څخه به څوک د مرکبې کلمې يو مثال ووايي؟

**ساده کلمه**: **هغه کلمه ده چې له يوې واحدې کلمې څخه جوړه شوې وي،**
**لکه**: **کتاب، قلم، زړه، خندا**
مرکبه کلمه: **هغه کلمه ده چې له دوو او يا زياتو کلمو څخه جوړه شوې وي،**
**لکه**: **کتابتون - پرهارپانه - سپين بولدک - جلال آباد - نوی ښار - گلخانه - پکتيا کوټ - ميدان ښار**

**په کلي کې ژوند**:

**په اوړي کې د کلي باغونه ښکلې او خوندورې مېوې لري. بريالی د رخصتيو په ورځو کې له خپل پلار سره ميدان ښار ته ځي، هلته د خپل باغ په گلخانه کې له پلار سره کار کوي. د راتگ په وخت کې له خپل باغ څخه د خپلې مور لپاره منې، ناک او زردآلو راوړي.**

**په کلو کې ژوند خوند کوي. ځکه د کلي چاپېريال سمسور وي او د خلکو گڼه گوڼه هم زياته نه وي، باغونه او شنه چمنونه پکې وي چې انسان يې له ليدلو څخه خوند اخلي. په کلو کې ښځې له خپلو مېړونو سره د کرنې په چارو کې پوره مرسته کوي.**



## فعالیتونه

- زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او بيا دې څو زده کوونکي په مناسب غږ په ټولګي کې ووايي او ښوونکی دې د هغوی د ستونزو لارښوونه وکړي

- زده کوونکي په دوو ډلو وویشئ. (الف) ډله دې له یاده څو مفردې کلمې ولیکي او (ب) ډله دې څو مرکبې کلمې ولیکي او دواړه ډلې دې نوموړې کلمې په جملو کې وکاروي او بیا دې د هرې ډلې استازي د ټولګي په مخ کې هغه ولولي.

- یو زده کوونکی دې په خپله خوښه بل زده کوونکي ته څو مفردې کلمې ووايي او هغه دې پرتختې باندې وليکي او په جملوکې دې وکاروي، نور دې د هغه تېروتنې وښيي.

- یو زده کوونکی دې د کتاب له مخې متن ووايي، نور دې ورته غوږ شي بيا دې بل زده کوونکی د ويل شوی متن مفهوم له یاده ووايي.

- زده کوونکي دې په لاندې جملو کې هغو کلمو ته ځير شي چې په هغو کې مرکبې کلمې راغلي وي، په ټولګي دې ووايي.

۱- د مزار شريف پوهنتون يو ښکلی کتابتون لري. ۲- سپين بولدك د کندهار په ولايت کې دی. ۳- په جلال آباد کې د نارنجو ونې ډېرې دي. ٤- زما ورور په نوي ښار کې اوسيږي.

٥- د حبيب کور په ګلخانې کې دی. ٦- پرهار پاڼه د يوه بوټي نوم دی.



## کورنۍ دنده

لاندې مرکبې او مفردې کلمې په جملو کې وکاروئ.

(سپين ګل - ګل غوټۍ - مور - کلی - بڼ - کار - پلار - وزير اکبر خان - ميوند واټ)